

د کتاب نوم: شنې زرغونې په اوښکو کې

وینا وال: ډاکټر ذبیح الله "حسن"


چاپکال: ۱۳۸۹ل/ ۲۰۱۰ز

چاپ وار: لومړی

کمپوزر: ذبیح شفق

## غزل

زخمونو مې د زړه دښتې سپړلې چې ته تلې
د درد پکې بړبوکې چورلېدلې چې ته تلې

خبرې مې له شونډو ترهېدلې چې ته تلې
سلګۍ مې بس په اوښکو لمبېدلې چې ته تلې

د خيال په هر کربليچ کې مې کمين و ياس نيولی
د هيلو قافلې مې لوټېدلې چې ته تلې

غربت رانه بوولې بيا زندان د پرديسۍ ته
کړۍ دې په پښو کې شرنګېدلې چې ته تلې

توپان د فريادونو دې و زړه په سر اخيستی
د ګل غوندې له شرمه موسېدلې چې ته تلې

قلم مې هر کيفيت د زړګي نشي پنځولی
ګړۍ بس په پېړيو بدلېدلې چې ته تلې

کوله دې "حسن" ته څه خبره وارخطا شوې
ګلپاڼې دې د شونډو رپېدلې چې ته تلې

✵✵✵



ورک دې دوی ورک یې تندي شه
چې یې ږدي په ځمکه باندې

له سجدې چې شي راپورته
بیا کړي نور تر خاورو لاندې

# غزل

سرې سترګې دې راوړه شرابي جانانه څېرته يې
وشــينده رنګونــه ګلابــي جانانــه څېرتــه يــې

راغلم په طواف يې چې ګناه د بېلتون پرېمينځم
و توشــه زلفــان دې ثــوابي جانانــه څېرتــه يــې

مــا د محبــت الــف و بــا لــه تــا زده کــړې ده
ډېر مــې پــه زړه اورې کتــابي جانانــه څېرتــه يــې

يــو ځل مــې د حُســن پــه پســتو څپــو کــې ونغــاړه
بيا مې په ورو ډوب کړه دريابي جانانه څېرته يې

غــم تــه مــې مهينــې د نغمــو جــامې ورواغونــده
ســوز پکــې پيــدا کــړه ربــابي جانانــه څېرتــه يــې

راشــه لپــې ډکــې لــه رڼــا "حســـــن" تــه ونيســه
تــږى درپســـې دى ســـرابي جانانـــه څېرتـــه يـــې

# غزل

په هره سا کې مې اځل راوړی
دا سې ژوندون راته ازل راوړی

ته وا حُباب کې بریښي شنه زرغونه
پلار ورته سپین شال د ململ راوړی

زه به هم سریښ کړمه ګرېوان په اوښکو
تا چې وربل دا سې ول، ول راوړی

تا که نازک لباس په تن کړو راغلې
ما نازک خیال غوندې غزل راوړی

نور هم تر شا دې لېوني راپسې
تش نه دی ما خیري، کوګل راوړی

په طبابت د "حسن" نه رغېدې
نن مې د شعر درته درمل راوړی

# غزل

ګوره ریښتیني به کیسې ترې ووځي
شونډې یې پرېږده چې پلمې ترې ووځي

ډېر اسویلي دي شال په پام پورته کړه
چې په ورو ورو بلې ډیوې ترې ووځي

یا مې د خولې نغرى له تیږو ډک کړه
یا خو یې پرېږده چې لمبې ترې ووځي

قلم مې مه تخنوه خیاله د یار
د تېرې شپې به خاطرې ترې ووځي

د زړه تنها کوکې مې ښخ کړه بانه
چې د دردونو قافلې ترې ووځي

"حسنه" مه غوره سترګې پسې
د زړه د وینو به ویالې ترې ووځي

## غزل

ستا د اوښکو آئینو کې د خپل غم تصویر ته ګورم
رانه مه اړوه سترګې نن مې سم تقدیر ته ګورم

څو شېبې موټې کې ټینګې لړ را ونیسه نصیبه
په ګډا یې نن په شونډو د خپل خوب تعبیر ته ګورم

ګونګې کربښې د ورغوي راته نه وایي حالونه
چې ترڅو به مې د هیلو لوټ تالا بهیر ته ګورم

راشه دومره خمارونه د وصال وزبېښو دواړه
چې نه ته په ګناه بند یې او نه زه تقصیر ته ګورم

په ارمان به د وطن شې په پردۍ خاوره کې خاورې
چې په پښو کې دې "حسنه" د غربت زنځیر ته
ګـــــــــــــــــــــــــــورم

## غزل

په انتظار مې ستا لېمې سترې شوې
نور خو مې یاره تلوسې سترې شوې

ظالمه دم درپکې پاتې نه شو
که د پښتون د مرګ پلمې سترې شوې

د پېغلتوب سیوری پرې وغوړوه
که د ځوانۍ مې ولولې سترې شوې

بیا یې پراو وکړ د جنګ په رباط
زمونږ د سولې قافلې سترې شوې

لا مې دي ځواني حوصلې د تکل
که په ژوندون مې حادثې سترې شوې

ورنه لوټلی د باروتو لوګي
په سپین سحر پسې مو شپې سترې شوې

خــــو مره يــــې واچـــول پـــه غـــاړه مـــړي
زمـــونږ د جنـــګ د ســـيند څپـــې ســـترې شـــوې

بـــــس ده راونغـــــاړه واتـــــن د بېلتـــــون
نـــور مـــو ترمنځـــه فاصـــلې ســـترې شـــوې

ســـتا پـــه زړه چـــاودي انتظـــار کـــې اشـــنا
د "حســـــــن" څـو مره اند ېښـنې سـترې شـوې

***

## يو شعر

چې يـو او بـل پـورې وهـو لکـه سـتومانه څپـې
ستا د ښـکلا پـه سمندر کـې مـونږه ځـای نـه لـرو

# غزل

یو ځل خو د سپین مخ کړه راڅرګند لکه آیینه
ښکلا ته دې یم یاره ارزومند لکه آیینه

انځور د هر انداز دې زنګوي په تناوونو
الفت مې تصور کړو هنرمند لکه آیینه

له سرهٔ منګې یې تاو دي پلوشې لکه د لمر
پړکېږي پرې له ورایه یې مړوند لکه آیینه

باور یې په جوهر د خپل شخصیت چې شي پیدا
شفاف او بې ریا یې شي ټول ژوند لکه آیینه

ځلا که د هنر مې د غزل خوره وره ده
نغښتلی مې هم ډېر دی پکې پند لکه آیینه

ټوټې ټوټې زړګوټی به کوشیر نه کړې ټول عمر
هر څو یې که "حسنه" کړې پیوند لکه آیینه

## غزل

شل کړو سفر لکه غبار نه راځي
د زړه په لاره مې دلدار نه راځي

زړګیه بل دارو درمل لټوه
اشنا خو نور په انتظار نه راځي

په هره خوله ده دروغجنه موسکا
نور مې په ځان هم اعتبار نه راځي

زړه مې په سترګو کې کړه غوټه ورځه
هسې هم بل چاته په کار نه راځي

زړګیه څه غواړې جنون د ځوانۍ
په کال کې دوه ځلې بهار نه راځي

تل درویزه کړم د تسل "حسنه"
بیا مې هم زړه ته هېڅ قرار نه راځي

# غزل

هر چا ته اوښکې تویولی نشم
نازیې چې وړي هغه موندلی نشم

د دنیا درد یم ستا پرهر ته راغلم
زړګیه اوس خو ترې وتلی نشم

خپل سر چې ږدم خدای ته په خاورو باندې
تر خاورو بل لاندې کولی نشم

ورته غمونه د دنیا که راځي
د زړه حجره خو مې تړلی نشم

رنګ د لفظونو مې له ژبې څاځي
انځور د خیال په خوله کاږلی نشم

ستا سمندر د محبت "حسنه"
د ژوند حباب کې ځایولی نشم

# غزل

چې په عشق کې یې ژیستن شي لکه شمع
خپلې اوښکې یې مدفن شي لکه شمع

اور په سر به پکې ګرځي سر ګردانه
چې تورتم د چا وطن شي لکه شمع

ټوله شپه ناست یم د سرو اوښکو باران ته
ترې نه ډکه مې لمن شي لکه شمع

چې تپوس به ترې نکر منکر د څه کړي؟
چې ټول ژوند یې ځنکدن شي لکه شمع

تل د بل د غم تیارو ته ویلې کېږم
خپل احساس راته دښمن شي لکه شمع

په لمبو د جهنم به یې څه سوځي
چې یې دلته اور کفن شي لکه شمع

دعوه هله د الفت کوه "حسنه"
چې دې اوښکه اوښکه تن شي لکه شمع

✵ ✵ ✵



خپل احساس مې په سينه کې اور بل کړی
چې لوګی د اسويلي مې له خولې خېږي

رانه وايي خله اجله دا احسان دې
په پوکي د تنفس لا تازه کېږي

## غزل

لکه ښکلي نه مې خپل نه مې پردي کړل
ارمانونه مې زړه هسې راژوندي کړل

په هغوی باندې شیندي مالیار گلونه
چا چې قتل په چمن کې پسرلي کړل

یو زما گرېوان ته ولو پېدل لاسونه
کنه دې کلي نور هم ډېر لېوني کړل

په جامو کې مې د څړیکو و پوښلي
لوخ مې ټول د زړه زخمونه شاعري کړل

چل د سوال مې نه دی زده مجبور مې نه کړې
نور رازده ډېر هنرونه دې یاري کړل

له منزله لاس په سر شو بې وسي وه
بیا یې هم په لار کې ښخ راته ازغي کړل

تش زما د چاک ګرېوان کيسې خو نه وې
ما په شعر کې د دنيا زګيروي خوندي کړل

رايادېږي مې ختمين کلی "حسنه"
دې لندن خو مو خويونه حېواني کړل

❋❋❋



د ارمان مې دوړه وم وربانـدې خاورې
ګوندې ويلې دې شي سوړ زړه لکه واورې

د احساس ګوتې د زړه په مراندو کېږده
چې نغمې د خاموشۍ مې پکې واورې

# غزل

رامې وړې د اوښکو دردانې د زړه په لپو کې
وادې خله د غم دا اشيانې د زړه په لپو کې

سپېره په ارام د ناز په ګوتو مې د زړه غوټې
ټينګې مې نيولي زمانې د زړه په لپو کې

پرته له زګيروي په دې چمن باندې څه وشيندم
وخوړې قفس مې ترانې د زړه په لپو کې

مه رابرېښوئ راته په سترګو کې دا زر د غلا
مونږ ته خداى راکړي خزانې د زړه په لپو کې

خير دى لا خو ډکه مې لمن د بې وسۍ نه ده
تا که بيا راوړي بهانې د زړه په لپو کې

خود به د طاووس ښکه ښکاري د "حسن" غزل
ورد ې کړې د حُسن پيمانې د زړه په لپو کې

## غزل

یوا ځې دا نه چې رڼا پسې نظر ګرځو
مونږ پتنګان یو په لمبو پسې وزر ګرځو

بس پښتانه یو دا زمونږه مجبوري وګڼئ
غټان تر پښو لاندې کوو، واړه په سر ګرځو

نور یې له ځان څخه شړي دا د جنت ریباره
مونږ به ترڅو د جنګ ګولۍ پسې ټټر ګرځو

له مونږه مه غواړئ اوږدې د واعظانو کیسې
مونږ شاعران یو په کوزه کې سمندر ګرځو

یو به تش لاسي دا منم خو ستمګره مونږه
هغه سر زوري یو چې سر په زورور ګرځو

ترې د کوي منګي "حسنه" د چا پېغلې هیلې
مونږ چې د اوښکو تل په سترګو کې ګودر ګرځو

# غزل

چې یې شاته راکتل داسې ښکارېږي
چې په رمز د محبت باندې پوهېږي

چې دې اوښکې په رخسار راشي حېران یم
چې دا اور په اوبو ولې نه مړ کېږي

وږمې زمونږ په تماشو کې مشغولا کړي
د ګلاب ځکه په مخ اوښکې بهېږي

د تا رنګ د حنا والوت له منګولو
زما د لاس د غربت کرښې نه ورانېږي

ستا په لار د تغافل به زړه ته درشم
خلک ټول په کږو لارو غره ته خېږي

محبت ته مې بل جام راوړه فطرته
د فلک پیاله شوه ډکه تري تو بیږي

زه ګردی سمندر ځای کړم په یوه شعر کې
خلک وایي په کوزه کې نه ځایېږي

چې خورې کړي په سپین مخ زلفې بیا ورشه
غلا په سپینه ورځ "حسنه" کله کېږي

***



ښه په هر څه باندې پوهېږي او ریا نه لري
خو بس یو دا کور یې دی ړنګ د چا پروا نه لري

پرېږده جانانه د باطن او د ظاهر خبرې
"حسن" دوه مخې آیینه ده مخ او شا نه لري

# غزل

په لېونتوب مې د سودا غوندې خوره وره شوې
د عشق په دښته د لیلا غوندې خوره وره شوې

ما لا حواس ستا تماشې ته رابللي نه وو
ته مې په رګ رګ کې اروا غوندې خوره وره شوې

زه په صحرا د اندېښنو کې جل وهلی پروت وم
ته مې د زړه په جام مینا غوندې خوره وره شوې

شپه مې د نور په سمندر کې لمبېده له بېګا
چې مې په غېږ کې د سبا غوندې خوره وره شوې

ما دې چې زلفې تخنولې لکه ګل د راښې
په توره شپه کې د هوا غوندې خوره وره شوې

ما چې غزل ته له احساس نه غزل توري تراشل
ته پرې له روح نه د معنا غوندې خوره وره شوې

زړه تــه مــې راغــی لــه مــودو نــه ترهېــدلی قــرار
چې مې پــه لپــو کــې دعــا غــونــدې خــوره وره شــوې

دا ســتا د خیــال لــه پولــو اخــوا الــوتلی نشــي
په زړه مې دا سې د فضــا غــونــدې خــوره وره شــوې

چا له "حسن" نه و پوښتل چې تــه مَښن پــه چــا یــې
ته یې په شونډو د موسکا غوندې خوره وره شوې

❋❋❋



یـــو خـــدای خبـــر دی پـــه مـــا څـــه تېرېـــږي
نـــور مـــې پـــه غـــم او ښـــادۍ څـــه پـــوهېږي

چـــې پـــه خنـــدا شـــم لکـــه ګـــل "حســـــــنه"
بیـــا مـــې هـــم ســـرې اوښـــکې پـــه مـــخ بهېـــږي

## غزل

ورته اخير به خپل ټبر پاتې وي
نه به انګرېز نه به ډالر پاتې وي

لرې خو کړئ بندې دا خونکارې دزې
چاته به مړی په ټغر پاتې وي

څوک به نن شپه هم په نڅا ولمانځي
څوک به ويده لوخ په ډګر پاتې وي

پردي که ځي مونږ ته به شور راپرېږدي
که پاتې کېږي بيا به شر پاتې وي

چې ترې لوټلې يې تقدير وي دلته
نو څه حساب به يې د محشر پاتې وي؟

تا چې نن دوه ډوله ډوډۍ وخوړه
نن به يو څوک ځکه نهر پاتې وي

خپل قوم به لوټ کړي بيا به کډه وکړي
وطن به بيا خاورې په سر پاتې وي

د اختر مياشتې ورته صبر وکړه
په بل ديار به مسافر پاتې وي

اخير به ويلې او سپينيز زړونه کړي
که د "حسن" شعر کې اثر پاتې وي

❋❋❋



د ستم چنجو مې دلته بدن وخوړ
و به نه رسي د تور لحد تر فرشه

هلته هم لکه چې شور د پرښتو دی
چې فرياد د زړه مې نه رسي تر عرشه

# غزل

لـه هيلـو ډكـې مـې لېمـې وې خـو تـا ونـه ليـدې
جامو د اوښـكو كـې ويـدې وې خـو تـا ونـه ليـدې

پــه هــډيره د محبـت كــې مــې ځلانــده اوښــكې
پــه هــر مـزار بلــې ډيــوې وې خــو تــا ونــه ليــدې

پــه څــه هنــر مــې پكــې ځــاى و د وفــا رنگونــه
روڼــې هنـدارې مـې جـذبې وې خـو تـا ونـه ليـدې

مه يې په عمر راشمېره چې بې لـه تـا تېرې شوې
د زنكــدن ترخــې شــېبې وې خــو تــا ونــه ليــدې

مرگ مې كه ستا په مخ تړلې وې د رخې د سترگو
خلاصـې د زړه مـې دروازې وې خـو تـا ونـه ليـدې

ما وې چې توى به كړم خمار ستا د ځوانۍ پـه لمبو
ډكـې د سـترگو مـې كاسې وې خـو تـا ونـه ليـدې

ډوب شول په اوښکو کې دې کسې لکه شمع چې تلم
په ما هم بلې سرې لمبې وې خو تا ونه ليدې

ستا په لټون چې تېږدې د بې وسۍ په لارو
د "حسن" سترې تلوسې وې خو تا ونه ليدې

***



چې تراوسه مې ژوند تېر دی په لټون کې
ارزوګانې مې توشه وې په دې يون کې

دا چې هيلې ورته وايمه "حسنه"
نفسونه دي پوکم يې په ژوندون کې

## غزل

څه لمبه دیدن دی، څومره اور دی ستا په سترګو کې
څومره چې چوپتیا ده هومره شور دی ستا په سترګو کې

شونډو کې مې راوړې د مچکو زولنې ورته
پاتې لېونتوب څومره لا نور دی ستا په سترګو کې

ستا ددې رسا او مسیحا کتو به څه وایم
هر نظر دې تېغ دی هم ټکور دی ستا په سترګو کې

جوړ یې دی له خاورو ارمانونو ګوره رنګ به شي
مه ژاړه جانانه د چا کور دی ستا په سترګو کې

پام کړه چې تقوا به مو د شرم پکې ډوب شي
نن خو ډېر سرکشه خمار خور دی ستا په سترګو کې

نیاز مې اخیر ستا د ښکلا ناز ته لمن وېړه کړه
وه نازک بدنې څومره زور دی ستا په سترګو کې

ستا په نظر پل اخلم د ژوند په کړلېچونو کې
بڼ د ارزوګانو مې سمسور دی ستا په سترګو کې

نور خو يې د ژوند پاتې کيسه په سرور ولمانځه
ناست چې له مودو "حسن" مېخور دی ستا په سترګو کې

❋❋❋



تر زړه مې وختل ازغي د بېلتون
نور دې راواړوه دا ګل مخ اشنا

ګوره چې سترګې رانه وانه ړوې
ژوند مې دې واړوی په بل مخ اشنا

# غزل

راشــه غېــږه راکــړه د پښــتو خبــرې پرېــږده نــور
جنــګ د محبت کــې د جرګــو خبــرې پرېــږده نــور

مه نغــاړه پــه رم کــې هوســۍ خويــه دا اوږده صحــرا
زړه ته مې چې راغلې بيا د تلو خبرې پرېږده نور

راشــه پــه مچکــو بــه د زړونــو غــوټې وســپړو
نــن زمــونږه شــپه ده د پــردو خبــرې پرېــږده نــور

مرانــدې د زړګــي مــې د ښــکلا مطربــه وچېــړه
وايــې وره آهونــه د نغمــو خبــرې پرېــږده نــور

ومنــه نذرونــه د عشــق پيــر تــه دې د ســرو شــونډو
پورتــه کــړه جامونــه د توبــو خبــرې پرېــږده نــور

ويلــې مــې تيــارې کــړه د الفت ډيــوې راځيتــه شــه
غېــږه مــې پــانوس ده د لمبــو خبــرې پرېــږده نــور

ستوري رقيبان دي سپوږمۍ مخې پروا مه کوه
شپول کې مې درپټ کړه د شرمو خبرې پرېږده نور

ورکړه صدقه "حسن" ملنګ ته د پستو شونډو
بس د رقيبانو د کوڅو خبرې پرېږده نور

***



زندګي مې تولـه خوب ده
تضادات پکې راټول دي

افسانې يې نه ختمېږي
حقايق پکې په تول دي

# غزل

له ثواب نه راتو کېږي په اروا کې
مینه څه ښکلې ګناه ده په دنیا کې

یا زما د زړه موسم لېوني شوی
یا مستي ده ستا د حُسن په فضا کې

د بېلتون د غم پالنه مې شوه هېره
د نظر او تماشو په مشغولا کې

اور په سر د ژوند تیارو ته یم یوائې
لمبوم یې لکه شمع په رڼا کې

راشه نن د زړونو هغه کیسې وکړو
چې لفظونه رانه ورک شي په معنا کې

د زمرۍ غوندې په سترګو کې راګوري
بیا په رم لکه هوسۍ شي په حیا کې

زما د وریت زړه حادثې پکې انځور دي
سوز ګداز د شمعې واوره په ژړا کې

بیا به هاغه لونګینې شپې راشي
راز و نیاز به کړو د زړونو په درزا کې

پام روژه چې د "حسن" ورماته نه کړې
بس ناڅاپه خولګۍ ورکړه په خطا کې

***



تشه مینه راسره وه دام یې نه و
نور په دې شتمن وطن کې زمونږ څه و

د تهمت مو څو ازغي په لمن خښ شول
نور د حُسن په ګلشن کې زمونږ څه و

# غزل

زړګیه بیا دې شور و شر ته راغلم
له دنیا سترې دې بستر ته راغلم

څه پوښتې زما څه د دنیا حقیقت
بس لکه درد ناسور پرهر ته راغلم

لکه اوبه مې پل کړو غر او سمه
بېرته د خپل یاس سمندر ته راغلم

د پله په زور دې تلمه پرېوتم اوس
لکه غبار خپل مقدر ته راغلم

ګڼلم سپک یې د ښکلا موجونو
لکه خځلې یې چې سر ته راغلم

کړې بد رګه به انا الحق راسره
نن دې ظالمه که سقر ته راغلم

د چـــا د پېغلـــو خـــاطرو پـــه خـــاطر
"حســـــــنه" بيـا د خيـال محشـر تـه راغلـم

❋❋❋



پـــه مخـــه راغلـــه نـــوک نيـــولې شـــوله
پـــه څـــه انـــدازيـــې دلـــداري کولـــه

څنګځنـــه تېـــره شـــوه راويـــې کتـــل
هـــم يـــې پښـــتو هـــم يـــې يـــاري کولـــه

# غزل

پـه کتـاب د ګرېوانـه يـې پـه لنـدو بڼو ليکمـه
بيـا د سـوي زړه آهونـه پـه سـلګو سـلګو ليکمـه

تا يو دم د تېرې شپې راز په لندو څڼو رسوا کړ
زه يـې کيـف د خمـارونو پـه شـېبو شـېبو ليکمـه

غريـو نيـولی تـرې نـه ځمـه څـه ويلـی ورتـه نشـم
حال د زړه ورته په لار کې د خپل تګ په پلو ليکمه

بيـا هاغـه زړه کيسـه ده پـرون هـم پـه وينو سره وه
نـن يـې هـم د زړه پـه وينـو پـه زړو زخمـو ليکمـه

د هـر چـا د ويـده غـم چـې تخنـوي د غريـو رګونـه
هـر غـزل د تړمـو اوښـکو پـه تـودو قطـرو ليکمـه

د احسـاس پـه سـرو بڅـرو د هـوا پـه څپـو بانـدې
نـن داسـتان درتـه جانانـه د بېلتـون د شـپو ليکمـه

نه مرید لرم "حسنه" نه مې پیر د شاعرۍ شته
بس یو څو لوغړن توري تش په سرو لمبو لیکمه

***



چې مې لرې محبت د رنه پرده کړه
په هر لور مې دې ښکلا خوره وره کړه

چې دې ما "حسن" ته وکتل په مینه
انعکاس مې د رڼا لکه آیینه کړه

## غزل

ستا د لوظونو خزانې ته راغلم
بیا دې یو نوې بهانې ته راغلم

شکر دی د پر خو غلط شوی نه یم
جو مات ته تلمه، مېخانې ته راغلم

تا زه عنوان ورته پېغور کړلم
اخیر دې څنګه افسانې ته راغلم

زاهد په بل زاهد شړلې کوزې
زه تږې نه غلی پېمانې ته راغلم

پل مې د زلفو د خوشبو راواخیست
په توره شپه دې اشیانې ته راغلم

د پر محلونو ته د زړونو لاړم
اخیر د خپل زړه ویرانې ته راغلم

"حسنه" شمارم د ګرېوان تارونه
حساب کتاب د زماني ته راغلم

❋❋❋



په چا مې لګي که ترخه خبره
دا مې عادت دی کړم ښکاره خبره

لکه اوبه له لوښي رنګ نه اخلم
هر مخاطب ته کړم د زړه خبره

# غزل

نن له نوي درد ژغېږي زما ناسور پرهر د اوښکو
راشه وامې خله جانانه یو ځل بیا خبر د اوښکو

نور مې خوف او وېره نشته د غمونو په صحرا کې
بدرګه راسره دومي څنګ په څنګ لښکر د اوښکو

څه که اوښکې او لفظونه راښوییږي مې له زړه نه
نه مې څوک په ژبه پوه شو نه مې شته اثر د اوښکو

پرې د مه تنها کې زړه کړه نور مې وس نشته جانانه
له مودو مې درته ویړ دی په ګرېوان ټغر د اوښکو

د سلګیو په کاروان کې په صحرا د شپې کې دومي
نه لنډېږي لویه خدایه زما د غم سفر د اوښکو

د غم سیند پکې ایسار دی ته به هم پکې لاهو شې
پټې سترګې مې لږ پرېږده مه پرانیزه ور د اوښکو

ولې قهر دې زيا تېږي نور څه غواړې ستمګره
نه مې چيغې شته په ژبه نه مې شور و شر د اوښکو

هره خوا زر پرستان دي په دې چم کې يې تول نشته
پرېږدئ خاورو کې شي خاورې د "حسن" جوهر د اوښکو

✵✵✵



زما مزدورې د دنيا مينه ګڼي
خو د جابر په خيرات شکر وايي

ده ته په تول جنت کې حورې ښکارې
خو زما د خال تعريف ته کفر وايي

# غزل

که هر څو ژوند د غریبي دی زمونږ
همدا خو راز د خوشحالي دی زمونږ

د سلګو تندر کې مو اوښکې اوري
داسې موسم د زندګي دی زمونږ

وره کې انګریز انګړ کې جشن لمانځو
څه ښه تجلیل د آزادي دی زمونږ

سر ږدو د خدای زړه د بنده په پښو کې
نوی انداز د بندګي دی زمونږ

د زولنو سره هم لوبې کوو
دغه عادت د لېوني دی زمونږ

ظالمه ستا ملامتیا د ضمیر
دا خو ټول شور د خاموشي دی زمونږ

څوک په بګرام څوک په زندان د ارګ کې
هر یو وګړی نن بندي دی زمونږ

که لوګي کېږو هم سندرې وایو
"حسنه" خوی د سپیلني دی زمونږ

***



تا په جهاد کتاب قلم ساتلو
دی دغه دواړه په خنجر ماتوي

وایي چې توره مې څوک نه پېژني
مخ ته چې ورشي هغه سر ماتوي

# غزل

زما له سترګو والوتله په ټول چم خوره وره شوه
چې خوشبو دې زما د اوښکو په شبنم خوره وره شوه

په سفر يې د اسرارو د هستۍ ځان سره بوتلم
لکه لار هسې مې مينه تر قدم خوره وره شوه

د هوسا ژوندګۍ لمر ته د خنجر له سيوري راغلل
چې رڼا په کومو خلکو د قلم خوره وره شوه

کله شخړه وي په خپله کله جنګ په حقيقت وي
قبيله چې کله دلته د ادم خوره وره شوه

ستا ډيوې مې د مچکو تصور ته بلولې
چې تياره يې په انګړ کې ستا د غم خوره وره شوه

لکه ولوېږي رڼا چې په آيينه او وپړکېږي
هسې ستا په مخ مې مينه په عالم خوره وره شوه

د "حســــن" د عمـر پـانې د خـزان بـاد رېژولـې
چې ورېمـه دا سـتا د حُسـن د موسم خـوره وره شـوه

✵✵✵



يوه او سپنيز واسکټ اغوستی په خپل ژوند مَېن دی
بـل لـه بـاروتو نـه ډک کـړی چې خپـل ځـان وبـا ېلي

نو قضاوت وکړه "حسنـه" دومره ګران خو نه دی
چې به نو څوک دا خونړی د جنګ ميدان وبا ېلي

# غزل

لاس مـــې پـــه زړه بانـــدې ســـاقي ونیســـه
جـــام دې لـــړ لـــرې د مســـتي ونیســـه

د غریـــو وربېځـــې دې پـــه ســـترګو راغلـــې
بـــاد تـــه یـــې زمـــا د اســـویلي ونیســـه

پـــړک بـــه یـــې نـــورو تـــه بلنـــه ورکـــړي
لـــه لمـــر نـــه لـــرې اننګـــي ونیســـه

آئینـــو د ســـترګو مـــې چاکونـــه وکـــړل
ورنـــه لـــړ لـــرې دې ځـــواني ونیســـه

انګـــور د اوښـــکو مـــې پـــه ســـترګو کـــې دي
ورتـــه دې شـــونډې شـــرابي ونیســـه

کـــه ټکنـــی شـــوې د ژونـــدون پـــه لارو
لاره د مینـــــې د ولـــــي ونیســـــه

سترګو راوړی مې د اوښکو زنځیر
ورته غمونه لېوني ونیسه

"حسنه" پالي به لا ځواني جذبې
لږ تر لمن دې زندګي ونیسه

***



ځینو بس نورو ته جهاد غوښتلو
زمونږ وطن یې غم آباد غوښتلو

ماته یې وې زړه په اسلام آباد کړه
ځان ته یې ټول "اسلام آباد" غوښتلو

## اختره پام کړه په دې
## خوا مه راځه

اخــتــره پــام کــړه پــه دې خــوا مــه راځــه
لار بـــه غلطـــه کـــړې پـــه غـــم بـــه واوړې
تـــه بـــه پـــه شـــونډو خنـــدا ګانې غـــواړې
پـــــه ژړا ګـــــانو او مـــــاتم بـــــه واوړې

دلتـــه غـــدی د ویـــر پـــه لـــوټ لګیـــا ده
دنیـــا د زړونـــو بـــه تـــالا ووینـــې
نـــه شـــوق د ژونـــد نـــه چـــا کـــې دم پـــاتې دی
نـــه بـــه پـــه خولـــه د چـــا خنـــدا ووینـــې

چـــا چـــې لـــه لـــوږې وي ټـــول کـــال نیـــولې
روژه اختـــره نـــو پـــه څـــه ماتـــه کـــړي
وچـــه ډوډۍ هـــم تـــرې ظـــالم لـــوټلې
ستـا پـه راتـګ یـې چې پـه خولـه ماتـه کـړي

ته یې خبر چې دغه دولس میاشتې
په مونږه څومره توپانونه تېر شول
څومره به نور سږ یتیمان ووینې
په کونډو څومره قیامتونه تېر شول

یتیمان نه غواړي عیدي له چانه
سږ یې له اوښکو دي لمنې ډکې
کونډې مو کرکه له نکریزو کوي
سږ یې له وینو دي منګولې ډکې

هو ! شته اوس هم څه بختور وګړي
ورځه هغوی کې به ته سیال ښکاره شې
چا چې زمونږ غم کې خوښي وه مونده
د دوی محفل کې به مشال ښکاره شې

ورځه ماڼیو د کابل ته لاړ شه
څوک به دې ګران په مرغلرو واخلي
ړنګ چې بمونه کړي په مونږ کورونه
دوی مو تاوان په شنو ډالرو واخلي

شور د ټوپک مو په سرونو کې دی
ساز او سرود ځان سره کېږده ورځه
مبارکي له زورورو واخله
مونږ د سلګو په غېږ کې پرېږده ورځه

***



ریال په یوه جنت یې بل لاس کې و
بل یې هر یو ګڼی د کفر بچی

اوس د غریبانو شنه مخونه ثټي
چا چې اسلام په ګز د ږیرې کچی

## غزل

زه به دتا غم ته مې ارمان په غېږ کې ونیسه
زه به دا مېلمه، تهٔ دا میزبان په غېږ کې ونیسه

وګوره د خپل حسن له هسکه زما د عشق وسعت
والوزه څپې زما د رومان په غېږ کې ونیسه

تاو لکه ساحل کړه ترې اشنا د محبت لېچې
زما د طغیانی ژوندون توپان په غېږ کې ونیسه

جوړ به یې له څاڅکو نه سرکشه سیلاب ونه شي
اوښکې دې جانانه د ګرېوان په غېږ کې ونیسه

ګورم تور قسمت مې په رڼا کې ستا د سپین تندي
لږ مې دې هنداري ته حېران په غېږ کې ونیسه

پرېږده په ښو یې چې پرېشان خیالونه وځنډم
ما پرېشانو څښو ته پرېشان په غېږ کې ونیسه

دوی که د رشتړي "حسـنـه" تاته د ګناه کاني
تـه يـې ټول د مينې د ايمـان پـه غېـږ کې ونيسـه

***

## يو شعر

پـه هنـر د اشـنايې د غـم دې پـوه کـړم
کـه دې غـم راځنـې وانـه خيسـت جانانـه

## غزل

زخمونه څه و زما د زړه خو موسېدل ګلونه
ستا چې د سترګو په ککو کې غوړېدل ګلونه

ستا د یادونو اورېده چې پرې د وینو پرخه
په هر پرهر کې مې د زړه راټوکېدل ګلونه

نسیم د روح مې تري نه ډکه کړه لمن له خوشبو
په هره څانګه دې ځوانۍ یې زنګېدل ګلونه

ګلشن وطنه څوک به څوک تر ګرېوانه رانیسي
چې هر مالیار دې پخپل لاس باندې رېبل ګلونه

تا خو خپل حُسن ته حېران د اسمان ستوري ځارل
ما د احساس درته په لار کې ویړول ګلونه

زه چې د عمر د خزان په تصور کې ډوب شوم
د تا انځور د پېغلتوب پکې ټومبل ګلونه

ځنګه به هېر کړمه هغه ازغي ازغي وختونه
تا د موسکا به چې اشنا پکې شیندل ګلونه

چې یې خوله په رخسار راغله پرې دلګیر ولې شوې
"حسنه" څه و خو په پرخه لمبېدل ګلونه

❋❋❋



مراندې د زړه مې له نغمو ډکې دي
پکې دردونه ستا د مینې زانګې

شنو زرغونو ته مې د اوښکو ګوره
پکې رنګونه ستا د مینې زانګې

## غزل

پکې د مخ شنې زرغونې خورې شوې
چې دې په اوښکو کې شغلې خورې شوې

لکه طاووس چې کړي خورې ښکې
لېچې يې پرانستې جلوې خورې شوې

شهباز د درد مې تخنوي زړګوټی
چې يې په مراندو کې نغمې خورې شوې

هسې مو سترګې سره وجنګېدې
څومره بيا لور په لور کيسې خورې شوې

تا لا مسکۍ شونډې پرانيستې نه وې
په ټول محفل کې سرې پيالې خورې شوې

د شال پانوس کې شوم ورپټ "حسنه"
په هر يو رګ کې مې لمبې خورې شوې

# غزل

نن افغان د نوي وخت بهير ورک کړی
اسيا ځکه د غور ځنګ امير ورک کړی

زورور د زماني يې ليکوالان دي
چې تاريخ د تور او سپين تو پير ورک کړی

د جمال او د جلال پولې يې نشته
تصور مې چې د يار تصوير ورک کړی

زور او زر يې په اسانه ځکه ومونده
د دې خلکو اکثريت ضمير ورک کړی

هر يو کس يې ټيل وهي د جنګ درياب ته
لويه خدايه پښتنو دستګير ورک کړی

شيطانان د زماني يې چې اوس ليکي
ملائيکو د پښتون تقدير ورک کړی

یــا بــه ځــان یــا بــه ظــالم پــه کــانو وولــي
نــن "حســـــن "لېــوني بیــا زنځیــر ورک کــړی

❋❋❋



چــې ســاده وي نــه د ځــان نــه د جهــان شــي
چې هوشیار شي بیا یــو اځې د خپــل ځان شــي

خــو چــې عقــل یــې معــراج تــه پــه ختــو شــي
ځــان تــرې هېــر شــي خــو تــر نــورو نــه قربــان شــي

# غزل

څومره واره وي د خانانو زړونه
وي خزانې د غريبانو زړونه

خلاصې تنې ګرځي له ډېرې ګرمې
سوځي حسرت د عاشقانو زړونه

شمې لمبې يې په رګو کې پوه کړه
تخنېږي بيا د پتنګانو زړونه

پکې نڅا کړي د فردوس ښاپېرۍ
د ارم باغ وي درندانو زړونه

مرمري لېچې تر "حسنه" تاو کړه
چې واخلې اور د رقيبانو زړونه

# غزل

نن په دې محفل کې زندګي لاروركه كړې ده
شور د محبت دې خاموشي لاروركه كړې ده

لا يې ازانګې د ملالۍ د ټپو غوږ کې دي
بيا چې په ميوند کې فرنګي لاروركه كړې ده

لار مې د جومات او مېخانې ترمنځ پوټې کړله
ستا په محبت کې مې مستي لاروركه كړې ده

سر ټيټوي خداى ته خو يې زړه وي د بنده پښو کې
څنګه له دې خلکو بندګي لاروركه كړې ده

زيږې مې غمونه له هر زغم نه زاره ترکى شوم
زړه ته مې ناترسې خوشحالي لاروركه كړې ده

نن رانه اداب د محبت "حسنه" مه غواړه
ټول سرور سرور يمه خودي لاروركه كړې ده

# غزل

زما د عشق د میکدې میخور پیدا شو
هر پرهر ته مې د زړه ټکور پیدا شو

زه به مړ یمه په قبر مې ناري کړئ
چې بې کوره پښتنو ته کور پیدا شو

بې وسۍ چې د زړښت خو مره خاموش کړم
هو مره زیات مې په جذبو کې شور پیدا شو

نورې مه څڅوه یاره پرې ستي شوم
د سرو اوښکو له قطرو دې اور پیدا شو

که هر څو مې زړه د عمر څپو وخوړ
لکه مې پکې یو نوی زور پیدا شو

ګوره پام چې پښېمانه باندې نه شې
غم دې څه و زما د غم غمخور پیدا شو

چې دنیا اوس ورته سپینه سپینه ښکاري
د "حسن" د ړندو سترګو تور پیدا شو

✵✵✵



څومره خوشبخته دي دا ځینې خلک
چې یې په ناسته مال دولت وګټی

مونږ په حلالو پسې ځان وباېلو
دوی په حرامو کې جنت وګټی

## غزل

د الفت د وینو پرخه یې څادروي
په خندا لکه غوټۍ چې مې پرهروي

هر ماښام دې سپین هلال د جبین وینم
هر سهار ځکه په ما باندې اخترروي

له خپل ځانه به پوره وي ترڅو ژوند کا
چې هر چاته یې څراغ بل لکه لمروي

چې لوګی د اسویلي یې له خولې خېږي
چا به اوروورته بل کړی په تټروي

په ما لمر د شپې راخېږي چې تا وینم
په تیارو باندې لړلی مې سحروي

هسکه غاړه کړي راټیټه هوش مې واخلي
لکه ایښې صراحي خوله په ساغروي

تـــر پلـــو لانـــدې درګـــورې زړه دې يوســـې
پـــه پـــرده د جينکيـــو څـــه بـــاور وي

د صدف غونـدې خاموشـه "حســـن" خوښ وي
چــې څــه وايــي خولــه يــې ډکــه لــه ګـوهر وي

❋❋❋



هـــو بهـــو چـــې دې څيـــره درتـــه ښـــکاره کـــړي
د هنـــداري غونـــدې دوســـت لـــه خدايـــه غـــواړه

چـــې ســـتاينه د يـــو بـــل کـــړي تـــل "حســـنه"
دواړه خـــره دې ګـــروې د يـــو بـــل غـــاړه

# غزل

پرې مې رېده اشنا د غم داستان رابانديږ مه وایه
حال مې د ریښې ریښې ګرېوان رابانديږ مه وایه

پت مې د وطن او د پښتو درسره وپالی
نور خو مې قاتل ته قهرمان رابانديږ مه وایه

هر څو که غربت او بې وسۍ خوله راترلې ده
ګوره نو شیطان ته خو انسان رابانديږ مه وایه

ښې جېبان بېډک کړل اوس به چپ ورته ورورانديږ کړي
ډلې ته د غلو خو وزیران رابانديږ مه وایه

ما ستا په خاطر شفاخانه ویل روغتون ته تل
اوس خو نو اشنا بیمارېستان رابانديږ مه وایه

نه غواړم درمل درنه پرهر پرهر دې پروت یمه
مالګې د خیرات ته خو درمان رابانديږ مه وایه

برخه یې د ځان په هر یو کار کې مقدمه وي
دې ټیکدارانو ته والیان راباندې مه وایه

زه "حسن" به ستا د بې وسۍ عذر ټول ومنم
مار ته د لستوڼي خو جانان راباندې مه وایه

***



په رښتیا چې جهالت لویه پرده ده
پټوي واړه عیبونه له خاونده

که جاهل خبر له خپلې ناپوهۍ وای
و، اخیستی به یې لاس له خپله ژونده

# غزل

نورې هیلې مې ګلفامه د ازغو پـه غېږ کې واخلـه
یو ارمان د محبت مې د خوشبو په غېږ کې واخلـه

عشق تصویر کړم د وربځو اوښکې اوښکې یم څڅېږم
څو شېبو ته مې د مینې د لېمو پـه غېږ کې واخلـه

ته چې ځې درپسې ګورم بس ورځه په مخ دې ښه شه
دا تصویر د رڼو سترګو د آئینو پـه غېږ کې واخلـه

لکه وریځې هلته اوري چې اړتیا یې چېرتـه نـه وي
مـا د غـم لـه دې بارانـه د ښو پـه غېـږ کـې واخلـه

وینم خوب مشکین ماحول دی د رخسار ګلشن ته خېږم
پټې سترګې مې د زلفو د زانګو په غېږ کې واخلـه

ته چې ځې درپسې ځغلي د لمریز حسـن مېرمنې
نور مې سیوری زړه له خاورو د جلو په غېږ کې واخله

د مچکو په کفن کې د بنګړو په شرنګهار کې
"حسن" ګور د محبت ته د نغمو په غېږ کې واخله

***



مونږه هر وخت يوه داسې جنګ ته دانګو
چې قرباني يې وي زمونږ په برخه

که کومه خوا پکې برلاسې هم شي
خو ناکامي يې وي زمونږ په برخه

# غزل

هسې بار به دې په ما باندې احسان شي
پرېږده تش مې زړه د اوښکو په باران شي

جنګ دې ورک شي غریبان پکې سر و خوري
زورورو ته د سرو او سپینو کان شي

د نیو یارک د ډېرې خځلې یې جارو کړې
اوس یې پرېږدئ د پیسو جارو کشان شي

د فساد مډال ګټونکي به تقدیر شي
ټول به بیا له خیره نوي وزیران شي

له مودو دلته دا یوه قاعده چلېږي
چې نوکر شي د پردو زمونږ حکمران شي

تظاهر نه چو په خوله ښه یې "حسنه"
چې صفات دې لکه ګل خپله ګویان شي

## غزل

ولې غوره وې راباندې اوس د خپل دیدار لمن
ډکه مې له ترخو چې شوه یاره د مزار لمن

ناست یمه د وخت په ځلور لارې کې په تمه دې
هرې یوې شېبې ته مې نیولې انتظار لمن

شور به دې مړژواندې زندګي کړي په نغمو د ژوند
ونیسه جانانه زما د اوښکو د ابشار لمن

اورې به تر عمره ازانګې د اناالحق زما
سا مې که تربته ستمګره کړې د دار لمن

راکړه پرې د حسن سوداګره یو مسکی نظر
ډکه مې راوړې ده له اوښکو د رخسار لمن

کوم یو وټومبم د روح اوربل کې ټول ګلونه دي
تشه دې "حسنه" ده په شعر کې د بهار لمن

# غزل

راشه د بل چا د زړه سر خونه یې
زړه دې راټول کړه سمندر خونه یې

غم ته مې راوړې د موسکا لړونه
اوښکې مې بږدې پکې زرګر خونه یې

سترګې دې نه لګوي چک په زړه مې
وایه جانانه مرور خونه یې

زه که زړه خورم خو یم پردیس خوړلی
ته خو مه ژاړه مسافر خونه یې

که هر څو ښکلی یې لندنه نو څه
زمونږ د کلي مازدیګر خونه یې

پرېږده پیوند مې شي د زړه چاکونه
ولې رالوېږې پکې لمر خونه یې

ښکلــــــه بېــــرې درتــــــه د زړه وتــــــړم
طوفــــاني حُســـنه څـــه لنګـــر خــو نـــه يــــې

وې چــې "حســــــنه" ښکلــه مــخ درلــوڅ کــړم؟
څـــه د بنګړيـــو ســـوداګر خــو نـــه يـــې

***



حيــا يـــې مـــخ تـــه لکـــه زغـــره راغلـــه
شـــکر پـــه خولـــه يـــې نـــابېره راغلـــه

چـــې جـــوړه شـــوې وه زمـــا پـــه زړه کـــې
پـــه خولـــه ددې هغـــه خبـــره راغلـــه

## غزل

مه راځه زما د زړه درمانه دلته مه راځه
شي به يې په څريکو کې ستومانه دلته مه راځه

جار دې تر قدم شمه جانانه دلته مه راځه
عشق دلته ګناه ده په ما ګرانه دلته مه راځه

زما چې ځواني ګل شوه د ښکلا سپرليه تم نه شوې
څه ورځه بل چېرې اوس ناځوانه دلته مه راځه

لا خو مې په وريت زړه کې خاپوړې کړي غوټۍ هيلې
سر به کړم سر تور درته خزانه دلته مه راځه

هسې به مې وينې د زړه په غولي ارمانونه کړې
نه کېږي زما او ستا قربانه دلته مه راځه

نه دې شو لمانځلی مازديګره د ديدن په خيال
مونږ خو مسافر يو ونادانه دلته مه راځه

نور مې د احساس په پرهرونو پټې مه تړه
پرېږده چې لمبه شي مهربانه دلته مه راځه

زه يې لټوم د وصل شپې په تورو څڼو کې
ورک به په تيارو کې شي هجرانه دلته مه راځه

اووري پرې بخري د جانان د جانانه خندا
نن خو د "حسن" د غم توپانه دلته مه راځه

❋❋❋



د زړه د وينو ورته ورکړه جامې
ناوې به پېغله تمنا شي درته

د زړه چاودون نغاړي "حسنه" پکې
لکه غوټۍ چې په خندا شي درته

# غزل

په خزان کې د زړښت یې نوبهار کړم
که په زړه د عشق داغونو لاله زار کړم

دا منه چې دا ستا زړه مې خزانه کړو
خیر که زه د خپلې مینې غنا خوار کړم

په نغمو ځان غورزوم له هر کړنګ یې
تنوع د زندګۍ لکه ابشار کړم

نه مې خوند نه مې ترتیب و د خبرو
خوږو شونډو د اشنا شیرین ګفتار کړم

که یې غم په سترګو روند کړمه "حسنه"
په امسا د محبت به یې رفتار کړم

## غزل

څه اور د خپل احساس مې څه پردو خوړلی یم
پــرد بس یمــه جانانــه اند ښنــو خــوړلی یــم

اشنا غوندې پېغام یې په ککو کې په خندا و
نــن داســې نااشــنا ســترګو چــړو خړولــی یــم

هر درد مې نغمې پیایي د زخمونو په ورشو کې
د عشــق داســې نــازبینو حــادثو خــوړلی یــم

بــس برخــې د ازل دي مــا لــه زړه منلــي دي
تــه خانــده لکــه ګــل کــه زه ازغــو خــوړلی یــم

نــه غــم ســره اشــنا شــوم نــه ارام راځــي بــې غمــه
څــه داســې بوربنوونکــو وســوســو خــوړلی یــم

زلمي چې مې په زړه کې لا د عشق دي ارمانونه
دا ټــول د لېونتــوب پېغلــو جــذبو خــوړلی یــم

بس څه مې کړې پوښتنه د لمرمخیو په مالت کې
شبنم غوندې "حسنه" پلوشو خوړلی یم

***



د امتزاج دا د ښکلا رنګونه
څومره ښکار دي د فطرت کارونه

ستا په ګل رنګ بدن نازکې جامې
زما د رنګین غزل نازک خیالونه

# غزل

په ګودر به مازدیګر غوندې در پرېوځم
په لمبو به دې مجمر غوندې در پرېوځم

زه به ضد ته به زارۍ کړې خو اخر به
په زنګون به مرور غوندې در پرېوځم

پرخې اوښکې به دې وڅښم په ژبه
ګله غېږ کې به د لمر غوندې در پرېوځم

بس دی اور ته مې نور مه پوکه ظالمه
په لمن به د شرر غوندې در پرېوځم

ډېر مې مه رټه اخیر به دې جانانه
په لېمو کې د نظر غوندې در پرېوځم

لږ کړه هسکه صراحي غاړه راټیټه
چې په شونډو د ساغر غوندې در پرېوځم

له نظر د نظر بازو مه ویرېږه
په سپین مخ به د ثادر غوندې در پرېوځم

د "حسن" د مینې درد به هله حس کړې
چې په زړه دې د پرهر غوندې در پرېوځم

❋❋❋



په ټټر مې د بېلتون تورې شوې پڅې
د خوږو یادونو زغرې راسره دي

چې اړتیا مې نه د مې او نه د نی شته
ستا د سرو شونډو خبرې راسره دي

## غزل

خمار دی ستا د سترګو که جامونه لېوني دي
فکرونو کې مې شور دی او خیالونه لېوني دي

که سوځي مې حواس ستا په لمبه لمبه ښکلا کې
قبول مې دا دوزخ دی جنتونه لېوني دي

چې څوک یې را خطا کړي بس زمونږ په تندي لګي
دا غشي دي ړانده که دا سرونه لېوني دي

ما بوځه شوګېرې دي د زلفانو شبستان ته
تر سر مې کړه مړوند چې مې خوبونه لېوني دي

تو پان دی د مغرورو خنداګانو په هر لوري
څوک اوري په دې شور کې فریادونه لېوني دي

وربځو د اوربل کې یې بربښنا شي په جبین کې
رااوري په مَښو تندرونه لېوني دي

کیسه به یې "حسـنـه" ستا د زړه وه ورتـه کړې
د درد ژبـې یـې پـرې دي پرهرونـه لېـوني دي

***



رانه غوښت یې جام د اوښکو، هر نفس د زندګي مې
اوس چې پوخ شو مه په غم کې د کباب غوندې له تندې

د روان دریـاب پـه غـولي، هستوګنه بـه زه څـه کړم
چې مې زړه چوي "حسنـه" د حُباب غوندې لـه تندې

# غزل

مــی پکــې زاړه پراتــه پیــالې بــدلې شــوي دي
هغــه لېونتــوب دی زولنــې بــدلې شــوي دي

چېرتــه اوس جانانــه د احســاس زخمونــه وســپړم
ســتا د ډېــرین زړه چــې کــوڅې بــدلې شــوي دي

اوس مې هم اوسېږي د احساس په شور و شر کې تل
هســې مــې د ســترګو هنګــامې بــدلې شــوي دي

ونغــاړه ښــکلا د تغافــل پــه حجــابونو کــې
پــام کــړه د جنــون مــې ارادې بــدلې شــوي دي

مــونږ خــو لا اشــنا د زړه فــانوس درتــه نیــولی دی
ســتا د اور وریــن حُســن لمبــې بــدلې شــوي دي

بیــا هغــه قاتــل هغــه ســزا هغــه مقتــل وطــن
تشــې مــو د قتــل بهــانې بــدلې شــوي دي

څــه بــه لوګــوم د حســـرتونو اســـويلي ورتـــه
اوس چــې يــې د حُســن تقاضــې بــدلې شــوي دي

مينه يــې "حســـنــه" د اشنا چې طغيـاني نـه کـړه
ســـتا د توپــاني نظــر څپـــې بـــدلې شـــوي دي

٭٭٭

## يو شعر

هــر يــو ســړی بــه تــرې نــه خونــد څــه واخلــي
شـــعر د "حســـــــن" تقــدير نامــه خــو نــه ده

## غزل

د احمد بابا خنجر نیولی زنګ دی
چې په کور د پښتنو د پردو جنګ دی

چا یې ژبه په ډالرو غوټه کړې
دا سړی چې په دې شر او شور کې ګونګ دی

د پړوني او شملو په پاکه خاوره
چا نیکر راته اغوستی او چا لنګ دی

شعر مې ځکه هر یو زړه ته لار پرانیزي
تخیل مې د احساس په وینو رنګ دی

لکه غر په خاموشۍ کې دی سرلوړی
په جامه که خوار "حسن" لکه ملنګ دی

## غزل

جانانه پاتې شه له کوره مه ځه
ړنده به شم د سترګو توره مه ځه

په خاموشۍ کې به دې زړه وچوي
زما د زړه له شرو شوره مه ځه

تا خو قسم په محبت کړی و
وعده دې هېره کړه بد پوره مه ځه

پردي وطن دې ځواني وخوړله
د پردیسۍ په نیلي سپوره مه ځه

ستا د الفت سیوري کې روږدې شومه
دنیا به شي په ما نسکوره مه ځه

د وینو اوښکې بهوي درپسې
د پرهر ژلي زړه ټکوره مه ځه

ډېرو غمونو شپېلولې يمه
ما چا ته مه پرېږده غمخوره مه ځه

د پرې په نورې درپسې شي اشنا
زما د سترګو له پېغوره مه ځه

زه که په اوښکو بلومه لمبې
ته هم "حسنه" له دې اوره مه ځه

***



د ژوندون په توپاني لار ځم يواځې
مګر دا چې خپلې اوښکې مې همرا شي

څنګه وساتمه زه ترې آئينه زړه
کاڼي کاڼي چې "حسنه" دا دنيا شي

# غزل

مونږ د یو بل نه انتقام وخوړو
د خوشال خان غوندې بهرام وخوړو

لکه منصور مونږ پښتانه، قاتله
په دار دې بند نه و الزام وخوړو

یو لا په بریت بل لاس وهي په ږیره
مونږ یې په کفر او اسلام وخوړو

په کورني جنګ یې کړو وږي لومړی
په ثو دانو یې بیا په دام وخوړو

له ورکو خلکو کړو د لارې تپوس
د بې موخې مزل انجام وخوړو

ورسره کړه مو د کوترو ژبه
چې دې بازانو په خپل بام وخوړو

بیا چې د چا راباندې خولې ماتوي؟
تېر ځل یې غېچ مونږ د ویتنام وخوړو

د پنجرې چرګ تر چاړې ورسي
مونږ قفسونو د باګرام وخوړو

ولې به بل تر ګرېوانه رانیسو
خپلې خندا لکه بادام وخوړو

اسلام او کفر زمونږ ګناه کله وه
بس پښتانه و تش خپل نام وخوړو

له تا یې هم هېر کړ د مینې غزل
مونږ هم "حسنه" ستا کلام وخوړو

## غزل

مړ چې احساس وي په ډالرو د دربار کوڅه کې
مېندې به خود ماشومان پلوري د هر ښار کوڅه کې

ملګرو راشئ بشردوسته طبیبان راغلي
وېشي د مالګې خېراتونه د پرهار کوڅه کې

د کندوز ښار له کاروبار نه خو خبر شو جهان
خدایږده چې څه به پلورل کېږي د مزار کوڅه کې

که یې چیچلي یو څو ځله خو چاره نه لرو
د وخت له جبره پناه غواړو د ښامار کوڅه کې

څوک د پردیس په خاموشۍ کې ویښې شپې تېروي
څوک کړي خوبونه د بنګړو د شرنګهار کوڅه کې

دوی په ماڼیو کې پاس ټاکي د رشوت نرخونه
لاندې په مونږ انصاف خرڅېږي د بازار کوڅه کې

کړې به نور څه په دې سیلۍ کې د وحشت

"حسنه"

په اسویلو ځان تودوه د انتظار کوڅه کې

***



که هر څو وینا د حق کړې

څوک دې نه اوري بیان

چې دې زور مته کې راشي

وینا هله شي برهان

# غزل

هسې زمونږ پرې د يو بل سره سيالي وه
د خوشبو غوندې روانه خوشحالي وه

ما د هر ارمان په ستوني چاړه کېښوه
چې جذبه د محبت مې خليلي وه

يا په دې بازار کې هغه جوهر نه و
يا سکه زما په ګوتو کې جالي وه

د افغان د غېرت هغه شمال څه شو؟
چې رپانده پرې شمله د ابدالي وه

ستا په زلفو کې تندي مې نظر غوځ کړ
که د شپې په لاس کې توره هلالي وه

چې د وخت څپو بدله کړه ښکاره شوه
چې دا سيمه د الفت هم ساحلي وه

يــا خــو دا چــې حقيقــت د مجــاز نــوم دى
يــا زمــا د شــعر دنيــا ټولــه خيــالي وه

هــــر چــــا لپــــې ډ كــــولې چپــــاول و
زه چــــې راغلــــم د ازل لمــــن خــــالي وه

اوس مــې ســتا اوربــل پــه ګــل هــم پېــرزو نشــي
زمــا پــه زړه كــې دومــره كلــه بخيلــي وه

پــړک يــې ســتا پــه آئينــه مــخ كــې راڅرګنــد شــو
كنــه مينــه د "حســـــــن" خــو ازلــي وه

✵ ✵ ✵

## يو شعر

دوى چـــې قـــاتلان و اتـــلان يـــې كـــړل
مـــونږ كـــړو شـــاعران د حـــادثو كـــاروان

# غزل

څو شيبې به مينه ناکې درته راوړم
غم د ژوند نه به يې پاکې درته راوړم

له نادانو اداګانو سره پام کړه
ارادې به مې بېباکې درته راوړم

نن به ستا له خوا يرغل د محبت وي
زه به سترګې شرمناکې درته راوړم

برمته يې په الفت کې رانه کېږده
مَين زړه به مې تنهاکې درته راوړم

لاس نيولې به دې بوڅې زما زړه ته
تلوسې به سينه چاکې درته راوړم

د "حسن" غوندې به اور په اوښکو بل کړې
چې غزلې يې دردناکې درته راوړم

## غزل

ته چې لاړ شې په ما جوړ لکه محشر شي
ستړی روح مې له بدن نه مرور شي

ولولې د محبت مې که سړې شوې
پېغلتوب به دې د ژمي ماز دیګر شي

لاس ګرېوان یې پرې حیا او محبت وي
اننګې یې ځکه سره د جنګ ډګر شي

په داغونو کې د زړه به دې راتول کړم
دم ختلي مې حواس ستا په نظر شي

بس ده پرېنګ به په ژړا شم د یار خیاله
مسافر ته خو وړه خبره غر شي

تري نه تاو کړمه څادر د ترمو اوښکو
چې مې اور د بېلتون بل د زړه په سر شي

لتهپلانـــدې تـولـــه شــپه لكـــه لـــوګـى يـــم
ســـرې لمبـــې د محبـــت راتـــه بســـتر شـــي

نـــن مـــې درد د زړه مېلمـــه دی خبـــر نـــه يـــم
چـــې سبا بـــه يـــې پـــړاو د چـــا پرهـــر شـــي

پـــه لمبـــو د محبـــت كـــې مـــې در پـــټ كـــړه
چـــې هـــر داغ مـــې د زړګـــي لكـــه شـــرر شـــي

اســـويلي بـــه تـوپـــاني كړمـــه "حســـــــــنه"
چـــې موجونـــه د ښـــكلا يـــې راخبـــر شـــي

***

## يو شعر

خـــود بـــه بـــدې د ګيـــدړ پـــه غـــوړو لګـــي
چـــې زمـــري كـــړي پـــه پښـــتو ژبـــه خبـــرې

# غزل

سرو کال شي نه تېرېږي زما د عشق موسم د اوښکو
ستا په ښار کې ږدم جانانه په ارمان قدم د اوښکو

زما د سوي ارمانجن زړه سوز ګداز وي پکې نغښتی
چې لیکم یې لکه شمع هر غزل په نم د اوښکو

هر یو دم مې دم ختلی هره سا مې جل وهلې
چې همېش ورته ملګرو لپې لپې ورم د اوښکو

نه امید نه دلاسا شته نه د یار طبیبې سترګې
ګوندې سپک یې شي دردونه ږدم په زړه مرهم د اوښکو

ته پروا مه کړه جانانه زه یوازې نه د رځمه
بدرګه راسره د رومي خنګ په خنګ عالم د اوښکو

ټوله شپه ژاړي "حسنه" ګلورینه ستا په یاد کې
چې یې پروت په اننګو وي هر سحر شبنم د اوښکو

# غزل

ستا په هره یو ادا کې سلام پروت وي
پکې زما نوي غزل ته الهام پروت وي

هستوګن د ګل خاني به خنګه خوب کا
چې په ځنګ کې یې قفس د بګرام پروت وي

د خپل ذوق تسکین پرې کړم ګنې پوهېږم
زما به هم تش په کتاب کې کلام پروت وي

په پښو کې د جمود به یې دام پروت وي
چې په لاس کې د ناهلو اسلام پروت وي

لکه پېغله پښتنه زینت یې زیات شي
چې په شعر مې نرۍ شال د ابهام پروت وي

ستوري ټول پکې دانه وانه خواره شي
چې تر سر مې یې د زلفو ماښام پروت وي

د شعور په نور د تګ لارې ته ګوري
چې په پیل کې د کار یې انجام پروت وي

د سبا بېلتون یې ژاړم لکه پرخه
کړی شپه مې چې په څنګ کې ګلفام پروت وي

موسکی شونډې راته ګوري لاس مې رېږدي
لکه تږي شرابي ته چې جام پروت وي

د کعبې په طواف بوخت هره ګړۍ وي
په سینه یې چې د مینې احرام پروت وي

د اجل صیاده هله یې سا واخله
چې "حسن" د یار په غېږ کې ارام پروت وي

✵ ✵ ✵

## یو شعر

چې تول عمر څخېدلې وچې نه شوې
دا وې سترګې د حسن که سمندرو

# غزل

اوښکې مې پرېږدئ چې کتار پاتې شي
چې د غم پلونه په دې لار پاتې شي

نظر به وويننځم په ترمو اوښکو
چې تقدس يې د رخسار پاتې شي

خير دی چې سترګې اړوي راځنې
پرېږده دا کيف يې د اقرار پاتې شي

کاش چې وربمه د اسويلي يې راشي
چې لږ حسرت مې د بهار پاتې شي

له ارمانجن زړه مې که ووتلې
تشه ډيوه به په مزار پاتې شي

ته چې کاسې د سترګو ډکې راوړې
څه به مې واک څه به اختيار پاتې شي

ګل مخې لاړې غم دې پرېښود راته
لکه په ګوته کې چې خار پاتې شي

سترګې په سترګو لګوي چکونه
شونډې به ثنګه انتظار پاتې شي

نورو ټیکه د جنت واخیستله
"حسن" به هسې ګنهګار پاتې شي

***



یوویشتمه پېړۍ راغله
پښتون یو شی راګیر کړی

یو په ږیره پورې خاندي
بل په ږیرې کافر کړی

# غزل

لـه سـرې لمبـې نـه پتنګـان څـه غـواړي
خـدا یږده لـه ژونـده چـې انسـان څـه غـواړي

مـونږ ورتـه جـوړه ګړدلـه کـړه د جنـګ
نـور دا ناشـکره شـرمخان څـه غـواړي

ځـان غولـوو چـې ملامـت بـه یـې کـړي
خـو لـه حیـوان نـه بـه وجـدان څـه غـواړي

څـه کنـډوالو تـه تـا انسـان نـه ګڼـي
لـه ودانیـو نـه پیریـان څـه غـواړي

افغانسـتان خـو ځـان ایـرې کـړو ورتـه
نـه یـم خبـر چـې تـرې جهـان څـه غـواړي

"حسـنه" مـه یـادوه تېـرې کیسـې
لـه تېـر تـاریخ نـه افغانـان څـه غـواړي

## غزل

پاتې شه اشنا د زړه چاودون کیسه لا پاتې ده
روح مې که تېښي دی د ژوندون کیسه لا پاتې ده

مه وینځه د زړه مقتل له وینو د شهید ارمان
تږي قاتلان دي د شبخون کیسه لا پاتې ده

لا خو مې خاپوړې کړي سودا د زړه په دشته کې
عشقه ګړندی شه د جنون کیسه لا پاتې ده

لا به څومره غاړو ته چړې سترګې په لاره وي
دلته د ځنګل د ړوند قانون کیسه لا پاتې ده

خیر دی که قلمه زه قلم د تا په جرم شم
وچ نشي د ظلم د مضمون کیسه لا پاتې ده

کړې یې لټپلاندې که په اور د ژوند کباب غوندې
صبر شه "حسنه" د ګردون کیسه لا پاتې ده

# غزل

جامې د اوښکو مې لا سرو سترګو وېستلې نه دي
چې پکې وینې دې د ژوبل زړه لیدلې نه دي

زما په ګلدان د زړه یې وا اوښتې د ګلو څانګې
چا وې غوټۍ د پېغلتوب یې غوړېدلې نه دي؟

مونږ وخت ځپلو که هېڅ چا ته څه ورکړي نه دي
خو ترمې اوښکې مو له چا نه سپمولې نه دي

وې په خوشبو یې مهجور زړه ته دلاسا ورکوم
چې مې تراوسه لا جامې د تا وینځلې نه دي

تا لکه خوب څومره ژر هېر کړم دروغجنه اشنا !
ما له بڼو ستا د کوځې خاورې څنډلې نه دي

که هر څو تربې یو د مینې خو پښتو هم پالو
د چا لمنې مو جانانه رانیولي نه دي

مـونږ کـه پـه اور د مقـدر کـې لکـه شـمع ژاړو
سپرغۍ او اوښکې مو په چا باندې شيندلي نه دي

زمـونږ پـه لمنـو کـړي زاهـده پرښـتې لمونځـونـه
چـې مـو پـه وينـو د انسـان کـې نښـتېځلي نـه دي

ململ په سر شونډې يې رپي شو مه دم شو خو لا
شنې زرغـونې د حبـاب شـال کـې راکتلـي نـه دي

دا خـو و يـاره د "حســـــن" څـو لـوغړن اسـويلي
لمبـې سـلګۍ خـو يـې لا پـاتې دي راغلـي نـه دي

❃ ❃ ❃

## يو شعر

د مـــزار د تـــوغ شـــڼا تـــه مـــې لـــږ غـــورږ شـــه
چـــې پـــه لوبـــه د ژونـــدون کـــې څنګـــه پـــړ شـــوم

# غزل

نن دې چې څنګه په خاطر کې راغلم
چې د هر ښکلي په نظر کې راغلم

پکې راپټه شه ډيوې بلې کړه
درته د شپې په تور څادر کې راغلم

د خداى دا دوه ښېګړې بس دي ماته
چې په مؤمن پښتون ټبر کې راغلم

درنه جار وځم بيا به ورک شم درنه
لوګى لوګى يم په مجمر کې راغلم

له ويرې ستا د پروني تغافل
نن مې د اوښکو په لښکر کې راغلم

تګ د الفت په لار اسانه نه و
"حسنه" درد وم په پرهر کې راغلم

# غزل

چې محفل ته دې د حسن منتر راوړ
هر يو زړه ته دې شرر د نظر راوړ

اسويلي د يار د خولې مې پر مخ لګي
که نسيم د ګل له شونډو سحر راوړ

په دنيا غواړي حساب راځني خدايه
ستا په نوم يې په مونږ دلته محشر راوړ

نور مې پرېږدئ د مرګ سيوري ته دمه شم
پنډ د ژوند د انديښنو مې په سر راوړ

په چړپا يې منګی تش شو رپېدله
خو منګی د زړه يې ډک له ګودر راوړ

ماشوم زړه دې رينګه پرېښوده "حسنه"
دا بيا چا ورته د شونډو شکر راوړ

# غزل

دومره نه یم بې ادراکه
زما ربه مینه ناکه

د خپل زړه په رنځ پوهېږم
قدم نه اخلي بېباکه

تا خو ویل چې تا جوړ کړی
د پیالې غوندې له خاکه

اوس خو پوټی پکې نشته
نوراني الهام له تاکه

په ځواني په پکو کړم
وتی نه دی لا له واکه

پټوم بالا ترڅو زه
دا پرهر لکه تټاکه

ربــه نــور مــې دا کنــډول کــړه
راتــه ډک د عشــق لــه څواکــه

منصـــــوري وزرې غـــــوارم
چـــې بهـــر شــم لـــه افلاکـــه

د جنـــــون لـــــه صـــــراحي را
دا ســـې مينـــه ســـينه چاکـــه

چـــې دنيـــا مـــې کـــړي د ذهـــن
لـــه خيـــرن عقـــل نـــه پاکـــه

✵ ✵ ✵

## يو شعر

بــل درمــل ددې طبيــب پــه لاس کــې نشــته
د "حســـــن" د شــعر لفظونــه دې دوا شــه

## غزل

یادونو مې فکرونه تخنول درته کنه
په تال د بې خودۍ یې زنګول درته کنه

چې کړل مو اروا ګانو پټ پټونې پکې یاره
خمار هغه وختونه خندېدل درته کنه

دردونه کوربانه مې خبرول ستا له راتګ نه
زخمونه مې د زړه چې پلټل درته کنه

هر څو که راپسې وې د محفل سترګې جانانه
په کونج کې مې د سترګو خو کتل درته کنه

په پانو به د شونډو د "حسن" راوینېدلې
نن خنګه وې ویده چې ده ژړل درته کنه

# غزل

ما د سترګو په سلام غېږې ته یوسه
غلی غلی مې د جام غېږې ته یوسه

غم د هجر مې بدن کړو اوښکه اوښکه
درنه څاڅم ما په پام غېږې ته یوسه

ستوري ستوري ارمانونه مې راوړي
ما د زلفو د ماښام غېږې ته یوسه

نور په څوکه د قلم دې تاریخ لیکه
بس ده توره د نیام غېږې ته یوسه

پرخه نه یم په سندرو کې درځمه
لکه زرکه ما د دام غېږې ته یوسه

د بخت ستورې ما په شا کړه چې ورکېږم
له پردو نه مې د قام غېږې ته یوسه

په اوربو د موسکۍ شوندو دل ارامه
ستړی روح مې د ارام غېږې ته یوسه

د قاصد نګهت فریاد یې په غوږ اورم
ما بهاره د ګلفام غېږې ته یوسه

د غرور له هسکه راغلم لکه پرخه
ګله ما په احترام غېږې ته یوسه

ستا د تور اوربل طواف ته یم راغلی
ما د وړانګو د احرام غېږې ته یوسه

غم یې تور لکه بورا کړمه "حسنه"
نور مې ژر د ګل اندام غېږې ته یوسه

❋❋❋

## یو شعر

که مې وي سترګې تل له اوښکو ډکې
شنې زرغونې مې هم په اوښکو کې وي

## غزل

لا خــو تــر منزلــه پــورې ډېــرې فاصــلې دي
ووايــه زړګيــه تــا کــې څــومره حوصــلې دي

بيــا پــه پښــتنو بانــدې ابــادې هــديرې دي
جنــګ تــه د پــردو يــې چــې روانــې قــافلې دي

شــته راپکــې دم چــې ســتمګره وارخطــا نشــې
اوس خــو مــې لا پېغلــې د زخمونــو ولــولې دي

ډېــرو تــه يــې ژبــې پــه ډالــرو کــه پــرې کــړې دي
شته لا ډېرې خولې چې پکې پاتې سرې لمبې دي

شينده اوس سپرغۍ لفظونه په شعرونو کې
څرېکې د احساس دي چې "حســنه" مېلمنې
دي

# غزل

د زړه تنهاکې په ازغو پرېوتې
اوښکې یې بیا چې په بڼو پرېوتې

جوهر د سترګو مې و زنګ وهلی
چې خړې دوړې په آئینو پرېوتې

دا په سپین غر شوې تورې وريځې خورې
که دا ستا زلفې په اوږو پرېوتې

خود به ځانونه خدایان ګڼي اوس
ورته چې ټنډې په سجدو پرېوتې

په لوډ سپیکر کې اذان مه کړه ملا
د کلي پېغلې په سپېدو پرېوتې

ستا د خندا تندر مې یو وړ نظر
شونډې مې ستا په اننګو پرېوتې

پردې جنډې يې په وطن پورته شوې
ځکې شملې د پښتنو پرېوتې

جذبې سرې شوې د ځوانۍ "حسنه"
واورې په لار د تللو راتللو پرېوتې

***



ای زما ښکلی جانانه
زما په زړه کې يوه سودا ده

ستا رڼا به څه رڼا وي
چې ستا سيوري کې رڼا ده

## غزل

وشیندئ پرې اوښکې په وطن اور لګېدلی دی
نه خاندي ګلونه په ګلشن اور لګېدلی دی

وینې د کابل که د خیبر اوښکې ورپاکې کړم
خدایه د پښتون په روح او تن اور لګېدلی دی

هاغه دي لمبې د شفق خپرې د افق په خوا
بیا د سباون په سپین کفن اور لګېدلی دی

ستا تر محلونو به یې هم سپرغۍ دروړسي
نن که زما د هیلو په لمن اور لګېدلی دی

اوس هم د فریاد او درد په وصل قدغنونه دي
مه ژاړه پرون دلته په نن اور لګېدلی دی

څښې مو تنده غرې لا د سولې د غزال وینې
بوی دی د باروتو په ختن اور لګېدلی دی

چېرته به اشنا د محبت د نغمو ځاله وړو
مات دي چنارونه په چمن اور لګېدلی دی

څنګه دې له خپل محل نه پورته شنې لوخړې شوې
تا خو وې چې لرې په دښمن اور لګېدلی دی

ځمه نور "حسنه" د جنون د پیر لمن نیسم
حسن لولپه شو په دیدن اور لګېدلی دی

❋❋❋

## یو شعر

څوک له لوږې ماشوم پلوري څوک غمې د بدخشان
تور بازار کړو ظالمانو زمونږ ګران افغانستان

## غزل

ډیـــوې د ارزوګـــانې بلـــوم کـــه تـــه راځـــې
جرګـــې د ارمـــانونو درلېـــږم کـــه تـــه راځـــې

چې کرښـې د خپګـان دې چېرتـه رانشـي پـه ټنډه
زخمونــه پــه تنهـاکو کـې ټـوبم کـه تـه راځـې

د وصـل پـه خوشـبو دې لمبېـدل غـواړي جانانـه
جــذبې د لېونتــوب راویښــوم کــه تــه راځــې

تیـارې د بېلتـون څیـرې پـه خوځښـت کـړه د بڼـو
زه غېــږ درتــه د ســترګو غــوړوم کــه تــه راځــې

هـر څـو دې کـه د حسـن د غـرور څو کـه ده هسـکه
کېــږدی پــرې د الفــت درتــه وهــم کــه تــه راځــې

بانـه بـه دې درانـه شـي پـه ګردونـو زمـونږ د کلـي
سرې اوښکې دې په لاره کې شیندم که ته راځې

له ډېرې مودې پروت دی د دردونو په کوڅه کې
تهوتې زړه د "حســــن" راتولـوم کـه تـه راځـې

***



هــر څــوک قاضــي او هــم مجــرم ځکــه دی
چـــې هـــر چـــا دلتــــه محکمـــه جـــوړه ده

پـــه څـــه چـــې نـــه پـــوهېږي کفـــر يـــې کـــړي
جهالـــــت دلتـــــه بنـــــه پلمـــــه جـــــوړه ده

## غزل

محبت به یو په دوه کړم راته راشه
چې اوبه اوبه دې خوله کړم راته راشه

په مچکو به دې شونډې کړم مشغولې
ورنه هېره به پلمه کړم راته راشه

د مدهوشو نظارو په سیل به لاړ شو
ټول حواس به دې نشه کړم راته راشه

خیر امانه په کنډو د زړه راواوړه
هر یو ناز به دې مېلمه کړم راته راشه

درته کړم به چراغان د زړه داغونه
شپه به جوړه د واده کړم راته راشه

رانږدې به دې لمبو ته د ټټر کړم
کاڼی زړه به دې اوبه کړم راته راشه

له "حسنه" به کړم تاو مرمري لېچې
دا وعده به در پـه زړه کړم راته راشه



ستا پـه يادونو زندګي تېره وم
تش پـه دردونو زندګي تېره وم

خيښتي مې خاورې وې عدم پـه اوښکو
چې پـه غمونو زندګي تېره وم

# غزل

چې نظر د خپل جانان د سترګو نشې
تر هغه به یې ارمان د سترګو نشې

په اختیار کې مې د زړه نه دي جانانه
چې خپه مې په باران د سترګو نشې

تش په غم مې مه راځه د زړه هم اوره
لکه اوښکې بندیوان د سترګو نشې

زما د سترګو په آئینو کې ځان ته ځیر شه
په حیرت مې چې حیران د سترګو نشې

د ستومانو ارزوګانو مجبوري وه
په شوخۍ چې مې پرېشان د سترګو نشې

د سپېڅلي محبت روی مې دروړی
هسې تش مې چې ګومان د سترګو نشې

ډار د دار او د رسن به درسره وي
په ښو چې اوېزان د سترګو نشې

د نظر پستې ځپې به درته غېږ کړم
وارخطا مې په طوفان د سترګو نشې

په ليدو چې د "حسن" تيتې په ناز شوې
په وعده چې پښېمان د سترګو نشې

❋❋❋



له مودو مې د خپل غم داستان ايسارو
نن مې سرو سترګو د نم په ژبه راوړ

د عشق درد وي هر سړی په زړه ځپلی
هسې مونږ بس د قلم په ژبه راوړ

# غزل

څه به شاعر وي چې په شعر يې نه مړېږي خلک
خو له مجلس يې چې په منډه اوچتېږي خلک

نشته قاتل نه په لمن د چا د وينو نشان
دا به دروغ وي چې بيا هم دلته قتلېږي خلک

نن وي مامور سبا وزير په دې زرخېز وطن کې
څو مره ژر ژر ملګرو دلته رالوېږي خلک

د جذب ظرفيت چې نه لري په ناز يې مه غوړوه
کنه نو بيا به دې له ګوتو نه ښوېږي خلک

باور پرې مه کړه بس تش لافو ته يې سر خوځوه
دلته چې ډز شي د يو بل تر شا پټېږي خلک

څنګه خاموشه مې د زړه په هديره تېره شوې
د مړو سلام ته خو ظالمې لړزېږي خلک

پرېـړده چـې وچښـي "حسـنـه" محلونـه واړه
اخيـر جـونګړې تـه د مينـې راسـتنېږي خلـک

***

## کوګل

دا مـنم چـې بـه يـې غـولی
تاتـه هـم هـوار ښـکاريږي
خـو زمـا د زړه د وينـو
سـمندر پخپـل کوګـل کـې
ډ پـرې لـوړې او ژورې
د ژونـدون دي پټـې کـړي

# غزل

لکه لمر نظر مې یوسي، په حجاب د پلوشو کې
عجیبه پرده داري ده، د وصال په تماشو کې

زړه مې مات نه کړې جانانه، محبت به مې سېوا شي
لکه خور چې د چا عکس شي، د هنداري په ټوټو کې

چې دا ستا د زلمي حسن، حق ادا شي پکې یاره
بیا دې زما ځواني شي خاورې د حسرت په هدیرو کې

په فطرت کې وي سپېڅلی، چاپېریال سړی خیرن کړي
د رنې چینې اوبه شي خړې پړې په ویالو کې

پېغلې ځړیکې مې د خوږ زړه، ستا د حسن سوبت غواړي
د الفت سندرې وایي د زخمونو په کوڅو کې

یو دې برند زړور بانه دي، بل حیا لري لېمو کې
څومره خوند دا امتزاج کړي ستا په سترګو پښتنو کې

اجنبي به ورته ښکارې، ګوره ورنه شې "حسنه"
بهرني سپي به دې وخوري د کابل په دروازو کې

❋❋❋



اسويلو سره مې اوښکې بدرګه شوې
پام ترې جوړ بادو باران جانانه نشي

سيند د اوښکو مې ډاډه په بيا راتلو کړه
چې دې پلو نه د تګوران جانانه نشي

## غزل

سین د وینو وروړم د جانان له غېږې پرېوتم
زه ناسور پرهر وم د درمان له غېږې پرېوتم

تا ورته تندی ما ورته سر په پښو کې کېښودو
مه وایه ملا چې د ایمان له غېږې پرېوتم

تشې مې په سر لکه برېبو کې سپیرې خاورې وړې
زه چې مې د ژوند د بیابان له غېږې پرېوتم

ستوری ومه خال دې کړم له خپل مداره ووتم
ستا په سپین تندي د کهکشان له غېږې پرېوتم

هره یوه لحظه مې ولولو ته پېغلتوب بخښي
ستا په محبت کې د دوران له غېږې پرېوتم

څو به تا په زور نیوه زما د مقدر مخه
اوښکه د حسرت وم د ګرېوان له غېږې پرېوتم

اوس مې چې په سترګو کې څپانده جنون نه وينې
ستا د اداګانو د توپان له غېږې پرېوتم

زه يې چې د مخ د لمر په نور کې څنګ کې نه ليدم
ستورى د تيارو وم د اسمان له غېږې پرېوتم

ډېرې مې د خپل ځان خبر لوڅې خواوې وليدې
مينه کې "حسنه" چې د ځان له غېږې پرېوتم

***



ډيموکراسي مو کړه بدله جامه
ملا مو هم په درېشي کې ګرځي

د نورو غله تر مخ څادرو پېچي
زمونږ غله په نېکتايي کې ګرځي

## غزل

یو مو شپې د ماتم تور ځادر اغوستی
بل کفن مو د رڼا سحر اغوستی

مېلمانه یې زعفراني خالونه بیا دي
زېړ لباس د مازدیګر ګودر اغوستی

تل مرثیې د ځوانیمرګو هیلو وایم
هسې شعر مې سندریز هنر اغوستی

اوښکې مه څڅوه یاره اوس به وچوي
ګوره زړه مې حبابي ټټر اغوستی

زما د زړه پوښتنه ولې کړې له مانه
چې هر شعر مې د آئینې جوهر اغوستی

دا یې ته په سره سالو کې وې لیدلې
چې مې درد د زړګي سور پرهر اغوستی

د سپند غوندې فریاد د مودو باسي
پرېږده زړه مې د لمبو مجمر اغوستی

په نظر د هنرمندو یې پړک لګي
که صدف مې د غزل ګوهر اغوستی

د بیدیا کاڼي پرې درې وړې مات کړئ
"حسن" اوس د لېونتوب سپر اغوستی

***



تغافل ته مې دې نوم د ادا ورکړ
د شاعر د محبت هنر ته ګوره

که ګلونه د بهار چېرته درياد شول
د "حسن" د زړه ګلګون پرهر ته ګوره

# غزل

زړونو په يو بل لګولې سترګې
هسې له سترګو شرمېدلې سترګې

دا په خوشبو زما د الفت لمبېده
ما په سرو اوښکو کې وينځلې سترګې

چې پکې خلی ستا د غم غړېدی
زما به څنګه پټېدلې سترګې

له بې صبرۍ مې ګبڼۍ ونيسي
چې کړي راپورته خوبولې سترګې

نور به مې څه ليدل په ډک محفل کې
لکه آئينې يې پړکېدلې سترګې

د ښو غشي تر حيا ووتل
چې په الفت کې جنګېدلې سترګې

ته خو چې لاړې پسې لاړې اشنا
زما دې په هر پل څڅېدلې سترګې

تا خو قسم د نه راتلو کړی و
"حسن" لا بیا هم غړولې سترګې

***



د تندې غوټې دې پرانېزه جانانه
چې نن راز د محبت دانه دانه شي

ډکې سترګې مې را پاکې په خندا کړه
چې مې اوښکې د حسرت دانه دانه شي

# غزل

ډکـــې لپـــې لـــه ســـلګو تـــر یـــزدان یوســـي
نـــور بـــې وزلـــه لاس د چـــا تـــر ګرېـــوان یوســـي

فلســـــفه بـــــس د انســـــان د هســـــتۍ دا ده
لـــه ارمانـــه ســـره راشـــي ارمـــان یوســـي

مـزدور بـار تـش پـه ګردونو كـور تـه ستون شي
ســـره غـــنم لـــه درمنـــدونو خانـــان یوســـي

د وران ملـــک مـــو پخـــوي تـــش ســـر کونه
چـې پـه شـوبلو كـې هـر ګـوټ تـه لېـوان یوسـي

خولـــه مـــې مـــه ګنـــډه ظالمـــه نـــاخبره
خاموشـــي بـــه مـــې ارام د اســـمان یوســـي

څـوک دي نشـته د خوالـه "حســـــنه" ژاړه
ګونـــدي غـــم درنـــه د اوښـــکو بـــاران یوســـي

# غزل

ستا که د مخ شمعې د لمبو جامې اغوستي دي
مونږه پتنګانو د ایرو جامې اغوستي دي

هسې خو یې هم پښتو تورېلې ده له ذهن نه
ښه ده چې دې ځینو د پردو جامې اغوستي دي

بیا د محرم د تجلیل پور په پښتنو وا ونښت
ټولې پښتونخوا چې د لوګو جامې اغوستي دي

څنګه به یې بیا د سرو ګلپاڼو شونډو نه منم
څومره په نخرو یې د پلمو جامې اغوستي دي

کله به چې لمر تري طلایي لېچې چاپېري کړي
ناوې مو د شپې لا د تیارو جامې اغوستي دي

ستا د ګلورین حُسن په وصل لمبېدلي دي
زما چې هرې سا نن د وربمو جامې اغوستي دي

زه به اواره یمه خو تاته به هم پته وي
څومره دې نازکې کرشمو جامې اغوستي دي

مزد د ټولې ورځې مو تش غم شي ورته رایې وړو
شپې مو چې "حسنه" د سلګو جامې اغوستي
دي

***



د تیارو په څلور لارې کې ولاړ وم
نُور د سترګو دې دنیا راته رڼا کړه

له ګردونو ډکې سترګې درته راغلم
نم د اوښکو راپیدا پکې ځلا کړه

# غزل

پټ پټ يې راوکتل روانه شوه
اوس خو په رښتيا خبره ورانه شوه

زما له برند نظر يې رميده حيا
پربوته په غېږ کې يې ستومانه شوه

شايد چې غلط ځای ته راغلې وه
سامې په رګو کې سرګردانه شوه

بيا مې شو حسرت د زړه په کور مېلمه
ستا د وصل هيله يې مېزبانه شوه

پوه يم لا يې زړه راباندې يخ نه دی
هسې مې بس چيغه تر اسمانه شوه

ستا له پېغلتوب نه يې رنګ واخيستو
سپين مې چې ويښته شو مينه ځوانه شوه

څه يې کړې تپوس په خندنۍ شونډو
اوښکه وه بس لاړه پښېمانه شوه

پت دې د پښتو همېش پاللی و
مينه کې "حسنه" درته ګرانه شوه

❋❋❋



تنکۍ مينه مېلمنه راځنې مه وړه
سرمايه د غريب زړه راځنې مه وړه

چاک د زړه کې مې راګورې بيا شې پټه
دا ادا دې پښتنه راځنې مه وړه

## څلوریزه

بس یو غم د بېلتانه راځنې واخله
د دنیا رنج و الم ته به غېږ ورکړم

څو به ستا د محبت سترګو کې یوسم
د تیاره لحد تورتم ته به غېږ ورکړم

## یو شعر

خیر دی که ډوب کړم سمندر د مینې
تَل یې د حُسن له ګوهرو ډک دی

## یو شعر

څه مې په اوښکو وکړم ته چې نه یې
وړه خبره راته غر غوندې شي

# تعبير د خوب راوېښ له خوبه کړمه

بېګاه مې خوب ليدلو
چې يو مَېن لېونی
په شومه دم د چا په ياد راوېښ شي
پاس په اسمان کې لټوي خوبونه
د خپل صنم وکړي ګومان په سپوږمۍ
ناقراري يې کړي بې باکه غوندې
يو لاس وراوږد کړي تيارو څنګو ته يې
په ملا يې غبرګه کړي راټيټه يې کړي
لکه يوه هسکه صراحي د ميو
چې د تش جام په شونډو شونډو کښېږدي
اميل د غاړې يې بل لاس ته ورشي
او مرغلرې يې د سپينو ستوريو
په شنه لمنه کې دانه دانه شي
ما بې اختياره پرې يوه چيغه وکړه
په يوه وريښمين لاس مې تندی وښورېد

تعبیر د خوب راویښ له خوبه کړمه
سترګې مې وغړېدې وپاڅېدم
ګورم چې زما د لاشعور ښاپېرۍ
زما په څنګ کې وار خطا ناسته ده
له خوبولو خماري سترګو یې
د شنه بخمل په پیڅه اوښکې څاڅي
ویل یې چې خوب کې دې ناري وهلې
بلا دې واخلم څه بد خوب دې لیدی؟
ما ویل تراوسه څنګه ویښه یې لا
او دا د کوم زلمي ارمان جنازه
د ترمو اوښکو په اوږو وباسې
دې وې چې هسې مې ستا مخ ته کتل
ستا د نفس خوږ ترنم ته غوږ وم
له هرې سا نه دې خوشبو راوته
بیا یو ناڅاپه مې زړه غریو ونیوی
ستا د ظالم بېلتون تېره خلې مې
په ویښو سترګو کې راوغړېدل
چې سبا ځې او بیا به کله راځې.

## راشه نسیمه د وطن وو ایه

زما وطنه په تا څه شوي دي
کومو بدرنګو په نظر کړې راته
ما دې لا زوړ زخم ګنډلی نه دی
په وینو سور بیا ستمګر کړې راته

دا څڅوي چې ستا غمجنې اوښکې
دغه په زړونو کې کرم نه لري
چې یې په قدر او معنا پوهېږي
هغه نازک زړونه یې زغم نه لري

څوک د بارو تو د دوزخ له لارې
د تا تنکي زامن جنت ته بیايي
چا دې تړلي د غربت په زنځیر
په خپو پیسو یې اسارت ته بیايي

راشه نسیمه د وطن ووایه
ګرځي هم اوس په سرو ګلونو پېغلې
اوس پرې بړېو کې د باروتو ثرخي
که کړي اتڼ په درمندونو پېغلې

ځوانان په عید کې اوس هګۍ جنګوي
که لا تر اوسه جنګوي سرونه
پېغلې ګودر که هدیرو ته درومي
وهي چمبې او که وهي سرونه

اورم چې یوه جنازه قبر ته ځي
پسې روانې کړي بمونه نورې
د تبۍ خټې د مړه زوی د ثلې
خیشتې په وینو کړي د بورې مورې

لمسون د بل ټوپک پردی دی دلته
خو بهوو مونږ سیلاب د وینو
د روغې جوړې پُل له کومه راوړو
زمونږ په منځ کې دی دریاب د وینو

خیال د "حسن" به غزلیز څنګه شي
چې ستا اروا له اندېښنو ډکه ده
چېرته نغمې د ژوندګي وکړي
ستا چې لمن له هدیرو ډکه ده

*** 

## یو شعر

درته وبه کړم خبرې تېتې تېتې
رانه مه غواړه تېت سر زوی د افغان یم

# د ژوند مازیګر

زمونږ د کورنه لرې وروړاندې
په یوه اوږد ژور پټي کې
چا و ایښي چنارونه
تا به وې چې مقتدیان دي
په صفونو کې ولاړ دي

اسمان ښکي یې ځوانۍ وې
د وړو کوچنیانو غوندې
نازک لمس به یې بهانه شو
پسخېدل او تخنېدل به

د بهار پاسته شمال ته
نښېدل به لکه ژڼي

ترنم به یې د پاڼو
یو او بل ته سرګوشي کړه

تا به وې چې عاشقان دي
د حیا پردې یې سوځي
د ځوانۍ ګرم سرور یې
یو او بل په غېږ کې نیسي
راز او نیاز کړي د کلونو

راته یاد دي نه هېرېږي
بیا یې وزبېښلې پاڼې
د خزان سپېره بادونو
خپلې پاڼې یې ګونګري شول
شړنګېدل به په بادونو

قافله به یې د عمر
دې جرس سره په تلو شوه

سپینې هسکې چې تنې وې
د هډوکو په کالبوت شوې
یا به وسوې یا به هسکې

زمونږ د چم د ځوانیمرګو
شهیدانوې په قبرو شوې

خو په ځای به یې د پاڼو
دا ځل تکې شنې جنډې وې

زه به یې غوږ ومه شغا ته
څه کیسې به یې کولې
د شهید د نیخوا ژوند

خو زه ځوان ومه کم عقله
ما ته نوي دغه ژبې
د شرنګا، د ترنم او د شغا وې

پېغامونه یې مرموزو
زه پرې کله پوهېدمه

خو تر سترګو چې زما شوې
په خپل مخ او په سر باندې

سپینې سپینې تنکۍ پښې
د ساړه ژمي د واورو

هله پوه شوم چې په خوب کې
ما تېر کړي دي د عمر
پسرلي او خزان دواړه

اوس مې شايد وي په برخه
ددې ژمي مازديګر کې
څو سړې شېبې د عمر
د تقدير په واک کې پاتې

# غزل

د عشق په هسکو منارو کې اوسو
مونږ چې د یو بل په لېمو کې اوسو

د ډار خپسې مو په خولو پرتې دي
مونږ د ژوندو په هدیرو کې اوسو

نن که دنیا شوه د نفرت سمندر
مونږ د الفت په جزیرو کې اوسو

ستا چې د ناز محل کې شور جوړ نشي
مونږ لکه آه په اسویلو کې اوسو

د عشق بورا ته ویړوو لمنې
مونږ لکه ګل که په اغزو کې اوسو

کړې مو خاشې هیلې له زړونو جارو
ټول د باروتو په لمبو کې اوسو

هسکې مانې را پسې مه لټوئ
مونږ خو د زړونو په حجرو کې اوسو

څوک مو تر پښو لاندې کوي "حسنه"
د چا د اوښکو په آئینو کې اوسو

***



د حُباب غوندې کوچني او نازک ژوند کې
زما د مینې سمندر به څنګه ځای شي

هر تعلق په مینه پایي، بې له مینې
پرستش به څه د بُت او څه د خدای شي

# مینه

یوه پوښتنه د ملا ده
چې دا مینه څه بلا ده

ما ویل غوږ شه دلته کېنه
تا راخیستې څه سودا ده

ویل زر شه راته وایه
راته جوړه ترې معما ده

ما ویل جار دې شم له سواله
ډېره لنډه مې وینا ده

مینه هغه حقیقت دی
چې هستي په دې بنا ده

له ساقي نه زاهد جوړ کړي
د مَېن هغه تقوا ده

د جنت یوه رڼا ده
چې راغلې په دنیا ده

دا هنداره د ښکلا ده
دا د حُسن تجلا ده

دا یوه هغسې خطا ده
چې بخښنه د ګناه ده

د زړګي د پرهرونو
دا ده ځړیکه دا شفا ده

د فطرت د ښکلاګانو
خزانه ده بې بها ده

هر سړی یې کړلی نه شي
خو د هر چا تمنا ده

په تياره د تورې شپې کې
دا اميد د رڼ سبا ده

دا تږو خلې د سينې ده
نه پټېږي دا رسوا ده

د ملنګ د زړه دولت ده
د سرتاج د امرا ده

بې له دې نه زندګي خو
يو غټ بار لکه سما ده

که مېن يې په صحرا ده
دا د زړه منځ کې بسيا ده

دا که هر څومره ژړا کړي
جوړه شوې له خندا ده

د دنیا وږي ماړه کړي
د حاتم هغه سخا ده

حقیقت پکې ښکارېږي
آئینې غوندې صفا ده

دا هم رنګ ده د ګلاب
دا معراج هم د ښکلا ده

دا کنجي د یار د در ده
توده وینه د لیلا ده

دا له هوش نه ناخبر
لا وړه ده بې پروا ده

کثرت نه مني په ځان کې
په وحدت باندې شیدا ده

په بدل کې د هر درد يې
خوشحالي د ژوند وړيا ده

بې له دې نه دې زاهده
بې معنا غوندې دعا ده

دې جنون ته منزل وښود
دا يوه داسې راهنما ده

دا د نن خوږه حلوا ده
خو هم وېره د فردا ده

هر مشکل ته مخامخ وي
هر قانون ته ددې شا ده

له ازله راروانه
بې پايانه يوه دريا ده

دا اغاز د معرفت ده
لکه اور چې د رڼا ده

مروره ده له عقله
له جنون سره اشنا ده

بې له دې ژوندون ولاړ وي
دغه روح د دې دنيا ده

ملا وويل چې "حسنه"
دا خبره دې رښتيا ده

پس له دې مې ته امام يې
درپسې مې اقتدا ده